# ترکي-پشتو

# TÜRKÇE-AFGANCA (PEŞTUCA)

Günlük konuşma kılavuzu

ترکي-پشتو ورځنی خبرې اترې


لیکونکی محمد فرید مسعود

YAZAN
MOHAMMAD FARİD MASOOD

۷۸۶

# پښتو په ترکي کې خبرې اترې

Türkçe -Afganca

dilbilgisi

[۲۰۱۴]

Yazar : mohammad farid MASOOD

لیکوال: محمد فرید (مسعود) ایشنگی

د الله پاک په سپيڅلي نامه
او دخپل ګران هیواد او خلکو په سپیڅلې مینه

*درنو لوستونکو په سر کې د دې کتاب مبارکي تاسو ته وایم کوم چې د لمړي ځل لپاره ترکي په پښتو کې جوړ شوی .*

*کتاب لیکل د هر چا کار نه دی کتاب خو به یا هغه څوک لیکي چې د خپل پوهې د قلم په څوکه د لوستونکو د حافظې سپینې پاڼې سرې کړای شي او یا به هغه څوک د هغه شي باره کې کتاب لیکي کوم چې د ده د زړه وینې یې د تاودو تاودو (ګرمو ګرمو ) اوسیلیو تفت وچې کړیې وي .*

*زه نه غواړم چې هغه تنکي ځوانان چې ترکیې ته د زده کړې لپاره ځي ستونزې و ګالي او*
*په ډیره اسانی سره ترکي ژبه زده کړي .*

*هره ژبه په سلو کې پنځوس د کتاب څخه ، په سلو کې پنځوس د باندې د خلکو سره په خبرو کولو کې زده کیږي.*

*نو هغه ځوانان چې غواړي یوه ژبه زده کړي هغه څه چې اړین دي هرومرو پام ورته وکړي .*

*دا کتاب ترکیې ته دتګ څخه مخکې دوه یا درې میاشتې وکتل شي نو د تاسو ډیرې ورځنی ستونزې به حل شي .*

*ستاسو د بریالیتوب په هیله .*
لیکوال : محمد فرید مسعود

Yazar:mohammad farid masood

# önsöz

Mohammad farid MASOOD benim oda arkadaşımıydı , hiç durmadan çalışıyordu hergün bir saat veya iki saat şu elinizdeki kitapla uğraşıyordu.en az bir sene sonra kitap hazırlanmış oldu.
Ben kitabı gözden geçirdim yazım hatalarını düzelttim ve okurlarına daha faydalı olacağını ümit ediyorum .
Mohammad farid MASOOD'a başarılar diliyorum

Saygı ve sevgiyle

Kadir KILINÇ

# نوملړ

| سرلیک | مخونه |
|---|---|

درنو لوستونکو ! زه غواړم د ترکيې د ځينې ښارونو او سيستمونو په هکله تاسو ته

معلومات درکړم.

د ترکيې تر ټولو لوی ، سوداګريز ، ګرځندويز او کلتوري ښار استانبول دی دا ښار

ډير ښه ځای پروت دی ، ډير نړيوال ارزښت لري .

د دې ښار مرکز بېازت
(beyazıt) دی . د ترکيې تر ټول ارزان هيپر مارکټ د بيم BİM په نوم ياديږي

د بيم هيپر مارکټ تر ۳۰۰۰ پورې ښانګې لري تاسې کولای شئ چې کوم ځای کې

ياست بيم هيپر مارکټ پيدا کولای شئ،

دا مارکيټ کې خوراکي توکي ډير ارزانه ترلاسه کيدلای شي ، مارکيټ ته يو د

(دننه GİRİŞاو بل( بهر کيدنه) – ÇIKIŞ او بل دهر شي قيمت معلوم دی کيدنه)-

او نور هيپر مارکټونه شته دی لکه ( شوک) ، (هاپي سنټر ) او نور مارکيټونه هم د

ارزانښت ځانګړې ورځې ولري چې کله کله کيدای شي د ۱۰ روپۍ توکی په ۲ روپۍ شي .

ځينې مارکيټونه د ارزانښت ( په ترکي ژبه کې ورته ايندیريم وايي )ځانګړی ورځې

لرې چې په دې ورځو کې تاسو کولای شئ چې د سلو روپيو توکي په پنځوس روپۍ

واخلئ

عموما لمړني خوراکي توکي لکه بوره ، اوړه ، وريژې ، ماستې ، غواړي ، پنير او

زيتون ځينې مارکيټونه په ځانګړو ورځو کې ارزانه کيږي .

او هغه سوداګر چې استانبول ته تلل غواړي په اکسرای ، بېازت ، تقسيم ا لونت کې

دې هوټلونو کې کوټې نه کرایه کوي ځکه دا ځایونه ډیر ګران دي .

زده کوونکي استانبول کې تر هرڅه دمخه باید استوګنلیکونه( ایکامتګا تزکره سې)
استوګنلیک د اخیستلو لپاره دا باندې کلیک وکړی دwww.iem.gov.tr

او اپلای ورته وکړي . او وروسته دې پاسپورټ فوټوکافي سره ، څلور انځورونو او
د رنګه پرینټ شویو اپلای پاڼو سره پته : په ریلګاډي سپاره شئ او په (امنییت )

تمځي کې ښکته شئ بیا نو هلته د استانبول د ( امنییت مودورلوعو) یانې په پښتو کې

میلي امنیت پوښتنه وکړئ نو ښې لاس ته به یې یو څوک در وښیي.

په استانبول کې د زده کوونکو لپاره سوارلیکارډونه دي چې دا کارډونه زده کوونکي

کولای شي په (کباتاش) کې د ترانسپورت له ستر مدیریت څخه ترلاسه کړي ، د تګ
نه مخکې باید ځان سره دوه انځورونه ، پاسپورټ فوټوکافي د ترکیې استوګنلیک فوټوکافي باید ځان سره ولري
هغه زده کوونکي چې استانبول ښار کې د زدکړې لپاره په لومړي ځل ځي دا پته بایدورته ولګي –
د زده کوونکو د لیلیو (شپه کوونځیونو) ستر مدیریت په تورکي ژبه کې ورته ( یورتکور) وایي په (چپه شهریمیني) کې دی
هغه زده کوونکي یا بهرني اوسیدونکي چې په ترکیه کې اوسیږ ي کله چې دوی غواړي ژمني بوټونه ، ژمنی کورتی او نور ژمني توکي واخلي نو دا د ژمي په پای
یعنی د پسرلي په موسم کې دا په سلو کې پنځوس ارزانښت باندې په ډیرو سودا

پلورنځیونو کې ترلاسه کولای شی.

او اوړني کالي ، بوټونه او نور توکي بیا د مني په موسم کې ارزانه کیږي ځکه په

په دې وخت کې هوا لږ شان ته سړیږي
او تاسو د ژمي په موسم کې ترڅو چې کولای شی ژمني بوټونه او کورتی مه اخلئ.
او بل مهمه خبره دا چې په ټکسي کې د یو ځای څخه بل ځای ته مه ځئ ځکه تاسو

ډیر ټکسي چلوونکي غله دي .

## د ترکي ژبې توري :

لوی توري :

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| A | B | C | Ç | D | E | F | G | |
| آ | بې | جې | چې | دې | اې | فې | ګې | |
| Ğ | H | I | İ | J | K | L | M | N |
| ع | هې | أ | اي | ژې | کې | لې | مې | نې |
| O | Ö | P | R | S | Ş | T | U | |
| آو | پېښ | پې | رې | سې | شې | تې | او | |
| Ü | V | Y | Z | | | | | |
| ايوو | وې | يې | زې | | | | | |

کوچيني توري :

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| a | b | c | ç | d | e | f | g | ğ |
| ا | بې | جې | چې | دې | اې | فې | ګې | نرم (ع) |
| h | ı | i | j | k | l | m | n | |
| ها | أ | اي | ژې | کې | لې | مې | نې | |
| o | ö | p | r | s | ş | t | | |
| اوو | پېښ | پې | رې | سې | شې | تې | | |
| u | ü | v | y | z | | | | |
| ا | ايووو | وې | يې | زې | | | | |

زه ډير شه يم*zı dir şı yam

په کور کې*pı kor ke yam

په ترکي ژبه کې ضميرونه( نومځري ) په لاندې ډول دي:

فاعلي نومځري

جمع(ډيربيز)Çoğul

Biz - مونږ

Siz- تاسو

Onlar-هغوی

مفرد(يواځيېز)Tekil

Ben- زه

Sen- ته

O-هغه ، هغې

يادوونه:

لاندې بيلګو کې وګورئ چې د نومونو په ځای نومځري څنګه کاروول شوي.

Ahmet ve Mahmut okula gidiyorlar.
احمد او محمود ښوونځی ته ځي

Onlar okula gidiyorlar
هغوی ښوونځی ته ځي

ملکي نومځري

| | |
|---|---|
| یواځیز tekil | ډیریز çoğul |
| زما*benim | زمونږ*bizim |
| ستا*senin | Sizin*ستاسو |
| د هغه*onun | دهغوئ*onların |
| د هغې*onun | |

یادوونه:
اوس  د لا ښه زدکړې لپاره لاندې بیګلې ته پام وکړئ

Benim evimde
زما په کور کې

Senin adın ne?
ستا نوم څه ده؟

Bizim ülkemizde
زمونږ هیواد کې

Onların kitapları
د هغوی کتابونه

Sizin kültürünüzde
ستاسو په رواجونو کې

اوس د لا ښه زدکړې لپاره لاندې جملې چې ترکي دي د پښتو په ليک ليکل شوی ښه په غور سره ولولئ

| | | |
|---|---|---|
| Çok iyi | چوک ايي | ډير ښه |
| Ne? | نې ؟ | څه ؟ |
| Nasıl? | ناسل ؟ | څنګه ؟ |
| Neçin? | نې چين ؟ | ولې ؟ |
| Kaça? | کاچا ؟ | په څو ؟ |
| Kaç? | کاچ ؟ | څو ؟ |
| Evet | اې وېت | هو |
| Hayır | هايير | نه |
| Değil | دې عيل | نه ده |
| Olabilir | اولابيلير | کيدای شي |
| Olmıyabilir | اولمياببيلير | نشي کيدای |
| Tamam | تامام | سمه ده ، ښه ده |
| Nezaman? | نې زامان ؟ | څه وخت ؟ |
| Git | ګيت | ولاړ شه |

| | | |
|---|---|---|
| Yürü defol | یووورو دیف اول | ځه ورکشه |
| Afiyet olsun | افییت اولسون | دارو مو شه |
| Teşekkür | تې شې کیور | مننه |
| Sağ olun | ساع اولون | ژوندی اوسې |
| Anladın mı? | انلادن مه | پوه شوې ؟ |
| Bize gel | بیزه ګیل | زمونږ کره راشه |
| Size geleceğiz | سیزه ګیله جاعیز | تاسو کره درځو |
| O dışarıya geliyor | او دشاری ګیلیور | هغه د باندې راځي |
| geldiğimde | ګېلدیعیم دې | زما د راتلو په وخت کې |
| geldiğim zaman | ګېلدیعیم زامان | زما د راتلو په وخت کې |
| Üniversitedeyim | اونیورسیته ده یم | پوهنتون کې یم |
| Eve gidiyorum | ایوا ګیدیوروم | کورته ځم |
| Evdengeliyorum | ایودن ګېلیوروم | کور څخه راځم |
| Parktayım | پارکتا یم | په چکرځۍ کې یم |
| Nereye gidiyorsun? | نېرده ګیدیور سون ؟ | چیرته ځې ؟ |

| | | |
|---|---|---|
| Okul başlamış | اوکول باشلامش | ښوونځی پیل شوی |
| Nerelisin? | نېرلیسن | د کوم ځای یې ؟ |
| O çok çalışkan | اوچوک چالشکان | ډیر تکړه دی |
| O çok tembel | او چوک تېمبل | ډیر لټ دی |
| Ben iyim | بېن اییم | زه ښه یم |
| Ben uyuyorum | اویویاجام | ویده کیږم |
| Gel burada otur | ګېل بوردا اوتور | راځه دلته کښینه |
| Hoş geldiniz | هوش ګېلدینیز | په خیر راغلاست |
| Hoş bolduk | هوش بولدوک | ښه مې ولیدې |
| Bilgisayarı al | بیلګیسایار ال | کمپیوټر راواخله |
| Yemek yedin mi? | یې مېک یې دین مي؟ | ډوډی دې وخوړله |
| Bize gel | بیزه ګېل | د مونږ کره راشه |
| Ne yaptın? | نې یاپتن | څه دې وکړل |
| Hayırdır | هاییردر | خیر خو به وي |
| Ne yemişsin | نې یېمیشسن | څه شی دې خوړلي |
| Ne getireyim | نې ګېتیرایم | څه شی راوړم |
| Aıışveriş yapmak | الش وېریش یاپماک | سودا کول |
| Pantolun gimek | پانتولون ګیمک | پتلون اغوستل |
| Ayakkabı çıkar | اياکاب چکار | بوټونه اوباسه |

| | | |
|---|---|---|
| Köpek bağla | کوپېک بعلا | سپی وتړه |
| Nezaman geldin | نې زمان ګېلدين | څه وخت راغلې ؟ |
| Değil mi? | دېعيل مي؟ | که څنګه ؟ |
| Haydi | هايدي | ځه |
| Yaslanma | ياسلانما | ډډه مه لګوه |
| Yüksek sesle konuşma | يوکسېک سېس له کونوش ما | په لوړ اواز خبرې مه کوه |
| Çok fazla konuşma | چوک فازلا کونوش ما | ډيرې خبرې مه کوه |
| Çok yemek yeme | چوک ييمېک يې مه | ډيره ډوډی مه خوره |
| Çok yatma | چوک يات ما | ډير مه څمله |
| Çok ders çalışma | چوک دېرس چالش ما | ډير سبق مه وايه |
| Bir yere çok fazla gitme | بير ييرې چوک فازلا ګيت مې | يوځای ته ډير مه ځه |
| Çok yeme | چوک ييمې | ډير مه خوره |

په هیپر مارکیټ کې
Hiper markete

| | | |
|---|---|---|
| Ne kadar istiyorsun | نې کادار ایستیورسون | څومره غواړې ؟ |
| Kaç kilo? | کاچ کیلو | څو کیلو |
| Yarım kilo | یارم کیلو | نیمه کیلو |
| Kilo kaça? | کیلو کاچا؟ | کیلو په څو ده؟ |
| Bir demet maydanoz | بیر دېمېت مایدانوز | یوه ګیډی ګشنیز |
| Bir kilo elma ver | بیر کیلو اېلما | یوه کیلو منې راکړه |
| Bir kilo soğan ver | بیر کیلو سوعان وېر | یوه کیلو پیاز راکړه |
| İki kilo patlıcan ver | ایکي کیلو پاتلجان وېر | دوه کیلو توربانجان راکړه |
| Şeker var mı? | شېکېر وار م | بوره شته ده |
| Afiyet olsun | افییت اولسون | دارو مو شه |
| Yine bekleriz | یینې بېکلېریز | د بیا راتګ په هیله |
| Yap ma | یاپمه | مه کوه |
| Bunu tart | بونو تارت | دا درسره وتله |

| | | |
|---|---|---|
| Trtmak benim işim | تارتماک بېنیم ایشیم | تلل زما کار دی |
| Bunu paketle | بونو پاکېتلي | دا درسره پاکټ کړه |
| Bunu streçle | بونو ستریېچلي | دا درسره مورامت کړه |
| Tadına bakmak istermisin? | تادنه باکماک ایستر میسن | خوند يې ګورې |
| Tadı nasıl? | تاداُ  ناسل | خوند يې څنګه ده؟ |
| Çok ekşi | چوک اېکشي | ډیر تروش ده |
| Çok şekerli | چوک تاتلا | ډیر خوږ ده |
| Bayatlanmış | بایاتلانمش | خوند يې خراب شوی |
| Çok lezzetli | چوک لېززتلي | ډیر خونداور دی |
| Çok lezzetsiz | چوک لېززتسیز | ډیر بې خونده دی |
| Çok yağlı | چوک یاعلاً | ډیر غواړجن دی |
| Acı değil | اجآ دېعیل | تریخ نه ده |
| Turşu var mı? | تورشو وار مآ | اچار درسره شته؟ |
| Evet var | اېویت وار | هو شته |
| Hayır yok | هایر یوک | نه نشته |
| olmayabilir | اولمایا بیلیر | نه به وي |
| Var mıdır? | وار می در ؟ | ایا شته ؟ |

په پوهنتون او ليليه (شپينځی ) کې
Üniversitede ve yurtta

| | | |
|---|---|---|
| Baban adı ne? | بابان ادآ نې؟ | د پلار نوم دې څه ده؟ |
| Hangi Üniversitedesin? | هانګي ايونيوېرسيتېدې سين | کوم بوهنتو ن کې يې؟ |
| Üniversiteniz nerde? | ايونيوېرسيتېنيز نېردې | ستاسو پوهنتون په کوم ځای کې دی ؟ |
| Bizim üniversitemiz KABATAŞ'ta | بيزيم ايونيوېرسيتې ميز کابا تاش تا | زمونږ پوهنتون په کاباتاش کې دی |
| Sabahliyin kaçta başlıyor? | سابالېين کاچتا باشليور | سهار په څو بجو پيل کيږي ؟ |
| Sabahliyin saat sekizde başlıyor | سابالېين سات سېکيزدې باشليور | سهار په اتو بجو پيل کيږي |
| Yol kaç saat? | يول کاچ سات | څو ساعته لار ده ؟ |
| Üç saat | ايوچ سات | درې ساعته |
| Hangi bölümdesin? | هانګي بولومدې سين | په کومه څانګه کې يې ؟ |
| İktisat bölümündeyim | ايقتيسات بولوموندې يم | اقتساد په څانګه کې |
| Kaç saat ders çalışıyorsun? | کاچ سات درس چالشيور سون | څو ساعته سبق وايې .؟ |
| Gece saat bire kadar | ګېجي سات بيرې کادار | د شپې يوه بجه پورې |
| Odada kaç kişisiniz? | اودادا کاچ کيشي | په کوټه کې څو کسان ياست؟ |

| | | |
|---|---|---|
| Odada sekiz kişiyiz | اودادا سېکیز کیشی یز | په کوټه کې اته کسان یو |
| Nasıl anlaşıyor musunuz? | ناسیل انلاشیور موسونوز | څنګه جوړ سره راځی؟ |
| Yok yaaaa | یوک یا | نه والا |
| Birisi gece geç geliyor | بیرې سي ګېجې ګېچ ګېلیور | یو یې د شپې ناوخته راځي |
| Diğeri diyor ki sivrisinek var ışığı kapatmıyalım | دیعېري دیور کي سیوریسینیک وار اشیعې کاپاتمیالم | بل یې وایي میاسي دي ګروپ به نه بندوو |
| Ve diğeri gece çok horlıyor | وې دیعرې ګېجې چوک هورلیور | او بل یې بیا د شپې ډیر خریږي |
| Birisi sabah erken uyanıyor | بیرېسي ساباه اېرکېن اویانیور | یو یې سهار وختي پاڅیږي |
| Kısacası rahat uyuyamıyoruz | کیساجاسی راحات اویویامایز | لنډه دا چې په ارامه خوب نشو کولای |
| Hep bu problemlerle karşı karşıya | هېپ بو پروبلېملرلي کارشی کارشیه | ټول د دې ستونزو سره مخامخ یو |
| İyi olacak | ایي اولاجاک | ښه به شي . |
| Yazın hava çok sıcak oluyor | یازن هاوا چوک سجاک اولویور | په اوړي کې هوا ډیره توده کیږي |

| | | |
|---|---|---|
| Yazda meyve ucuz oluyor. | | په اوړي کې میوې ارزانه کیږي. |
| Sıcaklık derecesi bazen 45 derece oluyor | سجاکلک دېرېجېسي بازېن ۴۵دېرېجې اولویور | د تودوخې درجه کله کله ۴۵درجې هم کیږي |
| Yaz mevsiminde okular tatil oluyor | یاز مېوسمیندې اوکولار تاتیل اولویور | د اوړي په موسم کې ښوونځۍ هم رخستیږي |
| Ve büyük şehirlerden çoğu insanlar kendi köylerine gidiyorlar | وې بویوک شېهیرلېریندې چوعو اینسانلار کېندي کویلرینه گیدیورلار | او د لویو ښارونو څخه ډیری خلک خپلو کلیو ته ځي. |
| Ve üç aylık tatili akrabaları ile geçiriyorlar | وې ایوچ ایلک تاتیلي اکراباالارې ایله گېچیریورلار | او درې میاشتنی رخستي د خپلوخپلوانو سره تیروي. |
| Orada nehirlerde yüzüyorlar | اورادا نېهیرلېرده یوزیورلار | هلته په سیندونو کې لمبیږي. |
| Onlar bir yandan kendi akrabaları ile görüşüyorlar ve diğer yandan çok sağlıklı yemek yiyorlar | اونلار بیر یاندان کېندي اکراباالار ایله گوروشویورلار وې دیعر یاندان چوک ساعلکلی یېمېک ییورلار | دوی د یوې خوا نه د خپلو خپلوانو سره ویني او دبلې خوا نه ډیر روغمال خواړه خوري |
| Ve bazıları köylerinde bahçeleri var | وې بازیلاری کویلرینده باهچېلېري وار | او ځینې خلک په کلیو کې باغونه لري |
| Ve bazı teze | وې بازآ تازه میوه | او ځینې تازه میوې دوی |

| | | |
|---|---|---|
| meyvelerden kurutup kendileri ile şehirlere getiriyorlar | لردن کوروتوپ شپهیرلېرینه ګېتیریورلار | وچوي او د ځانونو سره يې ښارونو ته راوړي |
| Ve bazıları kendileri ile köy peyniri,köy yoğurdu ve köy tereyağı getiriyor | وې بازلارآ کېندیلېري ایله کوی پنیري ، کوی یوعوردو وې کوی تېرېیاعآ ګیتیریورلار | او ځيني ځيني يې د ځانونو سره کليوالي پنير، کليوالي ماسته او کليوالي کواچ د ځانونو سره يو ځای راوړي. |
| Tereyağ ve peynir her sabah kahvaltıda yiyorlar | ترياع و پنير هر سباه کاه والته ده ییورلار | کواچ او پنير هر سهار په سبانري کې خوري. |
| Çökeleği de kendileri ile getiriyorla | چوکیلیعی د کیندی لری ایله ګیتیریورلار | چکه هم د ځانونو سره راوړي |
| Fakat onlar göveç yoğurdu çok seviyorlar | فاکات اونلار ګویچ یوعوردو چوک سېویورلار | خو دوی د کا تو‌ې ماستې ډيرې خوښوي |
| Yoğurt öğlen ve akşam yemeklerinde yiyorlar | یوعرت اوعلېن و اکشام یمیکلیرینه ییورلار | ماستې د غرمې او ماښام په ډوډيو کې خوري |
| Peyniri bozulduğunda özel makinalar ile kaşara dönüştürüyorlar | پینیری بوز ولدوعندا اوزېل ماکینا لار ایله کاشارا دونوشتوریورلار | پنير د خرابيدو په وخت کې د ځانګړو ماشينونو په وسيله په وچ پنير باندې بدلوي |
| Kaşarın kilosu peynire göre pahalı oluyor | کاشارن کیلوسو پینیرا ګوره پاهال دیر | د وچ پنير کيلو نظر پنير ته ګرانه وي |

| | | |
|---|---|---|
| Çünkü iki kilo peynirden bir kilo kaşar yapılıyor | چينکيو ايکي کيلو پينر دن بير کيلو کاشار ياپليور | ځکه د دوه کيلو پنير څخه يوه کيلو وچ پنير جوړيږي |
| Onlar kaşarda tost da yapıyorlar | اونلار کاشار دا توست دا ياپيور لار | هغوی په وچ پنير کې غبرګيزه هم پخوي. |
| Genelikle halk ayranı kendi evlerinde yoğurttan yapıyorlar | ګينيليک له هالک ايران کېندي اېلېرينده يوعورت تان ياپيورلار | عموما خلک شړومبې په خپلو کورنو کې د ماستو څخه جوړي . |
| Hatta bazıları markelerden yoğurdu almıyorlar. Taze sütü satan firmalardan taze on ya onbeş kilo sütü alıp yoğurt yapıyorlar | هاتتا بازلار مارکيتلېردن يوعوردو الميورلار . تازه سوتو ساتان فيرمادان تازه اون يا دا اونبيش کيلو سوتو الپ يوعورت ياپييورلار | ترهغه پورې چې ځيني يې بيا د مارکيټونو څخه ماسته نه اخلي . تازه شيدې خرڅوونکی کمپنيو څخه تازه لس يا پنځلس کيلو شيدې اخلي بيا يې ماستې کوي |
| Tulum peyniri çok meşhürdür | تولم پينيري چوک مېشهوردور | غړکې پنير ډير نوميالی دی |
| Marketlerde bir bardak ayran 50 kuruşadır | مارکېتلرده بير بارداک ايران ۵۰ کوروشادر | په مارکيټونو کې يو پياله شړومبې په ۵۰کروش باندې دي |
| Nekadar bir ürün fazla alınırsa okadar ucuza gelir | نې کادار بير ايورون فازلا الينيرسا اوکادار اوجوزا ګېلير | څومره چې يو توکی ډير واخستل شي هغومره ارزانه تماميږي |
| Tel peynir de iyidir | تېل پينير د ايي دير | تاريز پنير هم ښه ده |

| | | |
|---|---|---|
| Ette yeterince protein var | ایت تې یې ترینجې پروتین وار | په غوښه کې په پوره اندازه پروتین شته |
| Büyük şehirlerinde et fiyatı çok pahalı oluyor | بیویوک شهیرلېرینده ایت فیات چوک پاهالی اولویور | په لویو ښارونو کې د غواښې بیه ډیره ګرانه وي |
| Et kasaplarda ve hiper marketlerinde satılıyor | ایت کاساپلاردا وې هیپر مارکیت لېرده ساتلیور | غواښه په غواښپلورنځینو (قصابیو ) او همدارنګه په هیپر مارکیټونو کې خرڅیږي |
| En pahalı et koyun etidir | این پاهلی ایت کویون اتې دیر | تر ټولو ګرانه غواښه د پسه غواښه ده |
| Ve en ucuz et tavuk etidir | وې این اوجوز ایت تاووک ایتې دیر | او ترټولو ارزانه غواښه د چرګې غواښه ده |
| Siz yalnız tavuk yüreği,tavuk taşlığı ve tavuk boyunu kiloca alabilirsiniz | سیز یالنز تاووک یوریعې ، تاووک تاشلیعی وې تاووک بویونو کیلوجا الا بیلیر سینیز | تاسو یواځې د چرګې زړه ، د چرګې شاتینګه او د چرګې غاړه  په کیلو اخیستلای شئ |
| Bir kilo etin fiyatı aşğı yukarı 25 liraradır | بیر کیلو ایتین فیاتی اشاعی یو کااری ۲۵ لیرا در | د یوې کیلو غواښې بیه کم او زیات ۲۵لیرې  ده |
| Siz hazırlanmış kıymayı almayınız çünkü hazırlanmış kıymada beyaz eti ve taşlık çok katıyorlar | سیز  هازرلانمش کیمایی الماینز چیونکیو هازرلانمش کیما دا بېیاز ایت وې تاشلک چوک کاتیور لار | تاسو تیاره شویې  کوفته مه اخلئ . ځکه په تیاره شویې کوفته کې وازده او یا شاتینګه ډیره کارول شوی وي |
| Pastırma çok pahalı | پاسترما  چوک | د لاندي غواښه ډیره ګرانه وي |

| | | |
|---|---|---|
| oluyor.bir kilo 70-80 liraya oluyor. | پاهالی اولیور . بیر کیلو ۷۰ـ۸۰ لیرای اولیور .پاسترما دا | . یوه کیلو ۷۰ـ۸۰لیرې پورې وي. |
| pastırmada genelikle yumurta pişiriliyor | ګېنېلیک له یومورتا پیشیریلیور | په لاندي کې عموما هګۍ پخیږي |
| Et ürünlerinde coşkun markası iyidir | ایت ایوریون لرینده | د غوابنو په تولیداتو کې د جوشکون مارکه ښه ده |
| Çünkü bu markanın sahibi türktür | چیونکیو بو مارکانن ساهیبي تورک تور | ځکه د دې مارکې څښتن ترکی ده |
| Salam etten yapılıyor sabah kahvaltıda peynir,zeytin ve çay ile bereber yeniliyor | سالام ایت تن یاپ لر ساباه کاه والت دا پنیر ، زیتین وې چای ایله بېرابېر یې نیلیور | چاش کرای د غوابنې څخه جوړيږي. سهار ناشته کې د پنیر ، زیتون او چای سره یوځای خوړل کیږي |
| Sucuk de etten yapılıyor. İlk eti kıyıyorlar sonra tuz ve baharatı katıyorlar sonra koyun bsğırsaklarına dolduruyorlar sonra halka şekler veriyorlar ve sonra bazarlarda stıyorlar | سوجوک دې ایت تن یاپلرر. ایلک ایتي کیورال سونرا توز و باهاراتی کاتیور لار سونرا کویون باعرساک لارینا دولدورویورلار و سونرا بازارلاردا ستایور لار | ماش کرای هم د غوابنې څخه جوړيږي . لمړی غوابنه کوفته کوي<br><br>بیا مالګه او مساله پکې ګډوي، بیا یې د پسه کولمې ورڅخه ډکوي بیا ګرد شکلونه ورکوي او بیا یې په بازارونو کې خرڅوي |
| Ramazan ayında çoğu insanlar oruç | رامازان ایندا چوعو اینسانلار اورچ | د روژې په میاشت کې ډیری خلک روژه |

| | | |
|---|---|---|
| tutuyorlar | توتويورلار | نيسي |
| Ve bazı iş adamlar sahur yapmadan oruç tutuyorlar | و بازی ايش ادام لار ساهور ياپمادان اوروچ توتيور لار | او ځيني کاروباري خلک د پيشلمي کولو څخه پرته روژه نيسي . |
| Ramazan ayında hayır yapan korumlar çoğu yerlerde ,caddelerde ve camilerde vatandaşlara iftar açıyorlar | رامزان ايندا هاير ياپان کوروم لار چوعو يرلرينده ، جاده لرده و جامي لرده ايفتار اچيور لار | د روژې په مياشت کې خيريه موسيسي په ډيرو ځايونو ، واټونو او جوماتونو کې هيوادوالو ته روژه ماتی پرانيزي |
| Ramazan ayında zengin insanlar kendi akrabalarına iftar malzemeleri gönderiyorlar | رامازان ايندا زينگين اينسان لار کېندي اکرابا لارنا ايفتار مالزمه لرى گوندريور لار | د روژې په مياشت کې شتمن خلک خپلو خپلوانو ته د روژه ماتي توکي استوي |
| Ve çoğu insanlar yaz mesiminde iftar sahilerde açıyorlar | و چوعو اينسانلار ياز مېو سېمينده ايفتار ساهيل لرده اچيور لار | او ډير خلک د اوړي په موسم کي روژه ماتی په ساحلونو کي کوي |
| Belediyeler tarafından caddelerde iftar açılıyor | بلديه لر تارافن دان جاده لر ده ايفتار اچيليور | د ښاروالیو له خوا په واټونو کې روژه ماتی پرانيستل کيږي |
| Ramazan aynda sahurda bal,peynir,haşlanmış | رامازان ايندا ساهور دا بال ، پينير ،هاش لان مش | د روژې په مياشت کې په پيشلمي کې ګبين ، پنير ، زيتون ، جوش شوی هګي ، |

| | | |
|---|---|---|
| yumurta ,haşlanmış patates,bir bardak süt ve çay içiyorlar | یومورتا ، هاش لان مش پاتاتس، بیر بارداک سوت و چای اچیور لار | جوش شوي کچالو ، یوه پیاله شیدې او چای څښي |
| İftar hurma ile açıyorlar | ایفتار هورما ایله اچیورلار | روژه ماتی په خجیره (خورما) ګډه وي |
| Bazıları ilk önce namaz kılıyorlar ondan sonra yemek yiyorlar | بازیلاری ایلک اونجه ناماز کیلیورلار اوندان سونرا ییمېک ییورلار | ځیني یې تر هرڅه مخکی لمونځ کوي ورپسې ډوډی خوري |
| Ondan sonra çay içiyorlar ve teravih için hazırlık yapıyorlar | اوندان سونرا چای ایچیور لار و تېراویح ایچین هازرلک یاپیور لار | بیا چای څښي او د تراویح لپاره تیاری نیسي |
| Bay ve bayanlar teravih namazlarını camilerde cemaat ile kılıyorlar | بای و بایان لار تېراویح ناماز لارنی جامي لرده جېمات ایله کیلیورلار | ښاغلي او میرمني د تراویح لمونځ په جوماتونو کې په جمه سره کوي |
| Her dört rekaat teravih kıldıktan sonra hepsi yüksek sesle selat okuyorlar | هر دورت رېکات تېراویح کلدک تان سونرا هپسي یوکسک سېسله سلات اوکیورلار | د هر څلور رکاتو تراویح کولو څخه وروسته ټول په لوړ اواز درود وایي |
| İlk bahar mesiminde hava çok güzel oluyor | ایلک باهار مېوسېمینده هاوا چوک ګیوزل اولیور | پسرلي موسم کې هوا ډیره ښه کیږي . |

| | | |
|---|---|---|
| Okullar,ünivesiteler ve ana okullar açılıyorlar | اوکولار ، ایونیورسیتیلر و انا اوکول لار اچلیور | پوهنتونونه، ښوونځي او وړکتونونه پرانیستل کیږي |
| Karda bıkmış olanlar artık montlarını çıkartıyorlar | کار دان بک مش اولان لار ارتک مونتلارنی چیکارت یور لار | د واورې څخه په تنګ راغلي نور نو کورتی ګاني باسي |
| İlk baharda yağmur yağıyor | ایلک باهار دا یاعمور یاعیور | په پسرلي کې باران وریږي |
| Ağaçlar çiçekler açıyorlar | اعاچلار چیچېک اچیور لار | ونې ګولونه پرنیزي |
| Çobanlar çok mutlu oluyorlar çünkü sürü otlatmak için | چوبان لار چوک موتلو اولیورلار چینکیو سورو اوت لات ماک ایچین هر | شپانه ډیر خوشالیږي ځکه د رمې د څرودلو |
| her taraf yemyeşil oluyor | تاراف یم یښیل الویور | لپاره هره خوا تکه شنه کیږي |
| Nehirler sudan doluyorlar | نېهیر لار سو دان دولیور لار | سیندونه د اوبو څخه ډکیږي |
| Tarlacılar kendi tarlası ekim için hazırlıyorlar | تارلاجی لار کېندي تارلاسی ایکیم اچین هازرلیور لار | کروندګر هم خپل پټي د کروندې لپاره تیاروي |
| Bazıları buğday,mısır arpa ve | بازی لاری بوعدای ، مسر ارپا و | ځینې یې غنم، جوار ، اوربشي او |

| | | |
|---|---|---|
| bazıları yeşillik çeşitleri ekiyorlar | بازلاری ییشیل لیک چیشیتلری ایکیور لار | ځیني یې د ترکارۍ ډاولونه کري |
| Bazı tarlacılar tarlaları suluyorlar | بازی تارلاجی لار تارلا لاری سولیور لار | او ځیني کروندګر پټي اوبه کوي |
| İlk bahar birinci gününe nevruz deniyor<br>Ateşe tapanlar bu günü kutluyorlar | ایلک باها بیرینجي ګیونیونه نیو روز دینیور لار<br>اتیشه تاپان لار بو ګیونیو کوتلویور لار | د پسرلي لمړی ورځې ته نوروز  وایی<br>اور پرست دا ورځ لمانځي |
| Bazı insanlar nevruz günü iyi hava olduğu için kuluyorlar | بازی اینسان لار نیوروز ګیونیو ایي هاوا اولدو عو ایچین کوتلویور لار | ځیني خلک د نوروز ورځ د ښې هوا لرلو له کبله لمانځي |
| Nevruz gününde gün ve gece eşit oluyor | نیو روز ګیونیونده ګیویون و ګیجه ایشیت اولیور | په نوروز کې شپه او ورځ مساوي کیږي |
| Nevruz gününde her kes  çok iyi yemekler hazırlıyorlar | نیو روز ګیو نیو نده هر کس چوک ایي هازر لیور لار | د نوروز په ورځ کې خلک ښې ډوډۍ ګانې تیاروي |
| Çocuklar eğlence için parklara gidip birbirleriyle oynuyorlar | چوجوک لار ایعلنجه ایچین پارکلارا ګدیپ بیر بیر لریله اوینیور لار | ماشومان د ساتیرۍ لپاره چکرځایونو ته ځي. او له یو بل سره لوبې کوي |
| Nevruz gününde | نوروز ګونونده هوا | د نوروز په ورځ |

| | | |
|---|---|---|
| Hava çok serin oluyor | چوک سېرین اولویور | هوا ډېره ملایمه وي |
| İran'da nevruz günü resmi tatil oluyor | ایران دا نوروز گیونو رسمي تاتیل اولیور | په ایران کې د نوروز ورځ رسمي رخصتي وي |
| Nevruz gününde çocuklar futbol voleybol ve başka oyun oynuyorlar | نوروز گیونونده چوجوک لار فوتبال ولیبال و باشکا اویون اوینویورلار | د نوروز په ورځ کې ماشومان فوټبال ولیبال او نورې لوبې کوي |
| Herkes mutlu görünüyor | هرکس موتلو گورونیور | هرڅوک خوشحاله ښکاري |
| Türkiye'de nevruz gününde resmi tatil olmuyor | ترکیه دې نېوروز گیونوندې رېسمي تا تیل اولیور | په ترکیه کې د نوروز په ورځ رسمي رخصتي نه وي |
| Nevruz gününde İran'da üç gün tatil oluyor | نېوروز گونوندې ایران دا ایوچ گیون تاتیل اولیور | د نوروز په ورځ په ایران کې درې ورځې رخصتي وي |
| Afganistan'da nevruz günü tatil oluyor | افگانیستان دا نېوروز گینو تاتیل اولیور | په افغانستان کې د نوروز ورځ رخصتي وي |
| Battı ülkelerin çoğu insanlar nevruz gününde mutlu oluyorlar | باتی ایولکه لرین چوعو انسان لار نې وروز گیونوندې موتلو اولیورلار | د لویدیځو هیوادونو ډېر خلک د نوروز په ورځ خوشاله ښکاري |

# د منې او ژمي موسمونه
# Sonbahar  ve kış mesimleri

Kış mesiminde hava çok soğuk oluyor

د ژمي په موسم کې هوا ډېره سړه (يخه) وي

Çok kar yağıyorana yollar ve sokaklar kar altında kalıyor

ډيره واوره وريږي  لويې لارې او کوڅې د واورې لاندې کيږي

Yollar buz tutuyorlar

لارې  يخک (کرنګ) نيسي

Kış mesiminde geceler uzuyorlar ve günler kısıyorlar

د ژمي په موسم کې شپې اوږديږي او ورځې لنډيږي

Kış için bayanlar bamya , patlıcan,domates  , biber, üzüm , kayısı ve incir kurutuyorlar

د ژمي لپاره ميرمني  بينډۍ ، تور بانجان ، سره بانجان ، مرچ ، انګور ، زردالو او اينځر وچوي

Kış için bazı bayanlar domates sezonunda 20 ve ya 30 kilo domates alıyorlar sonra kolayca soymak için üstüne az kaynamış su atıyorlar sonra büyük tencereye koyuyorlar ve  iyice kaynatıyorlar kaynadığında kavanozlara

د ژمي لپاره ځيني ميرمني  د ټماټرو (رومی بانجانو ) په سيزن کې ۲۰ يا ۳۰ کيلو ټماټر اخلي بيا د اسانه پوست کولو دپاره د پاسه پرې لږ جوش اوبه اچوي بيا په لوی پخاووني (ديګ) کې اچوي او ښه يې جوش کوي کله چې جوش خوري په شيشيز بوتلونو کې

dolduruyorlar kapağı kapatıp ters koyuyorlar soğuduktan sonra alıp karanlıkta

اچوي سر يې پسې بندوي او په بل مخ يې کوي د سړيدلو څخه وروسته

| | |
|---|---|
| bırakıyorlar böylece salça elde ediyorlar | يې را اخلي په تياره کې يې کيږدي او پدې توګه روب ورڅخه لاسته راوړي |
| İnşaat işleri duruyorlar | ودانيز کارونه دريږي |
| Bir ay için üniversiteler ve okullar tatil oluyorlar | د يوې مياشتې لپاره پوهنتونونه او شوونځې رخصتيږي |
| Gençler kızlar ve çocuklar kar topu oynuyorlar | ځوانان پيغلې او ماشومان د واورې توپ کوي |
| Her kes kışlık ayakkabı, kışlık mont ve kalın kalın şeyleri geyiyorlar | هر څوک ژمني بوټ ژمني کورتی او ډېل ډېل شيان اغوندي |
| Gençler kar üstüne kayıyorlar ve eğleniyorlar | ځوانان د واورې په سر ښوايږي او سات تيروي |
| Sonbahar mesiminde hava soğuk gibi oluyor | د مني په موسم کې هوا سړه غوندې کيږي |
| Ve sokaklarda ve caddelerde sararmış , dokulmuş koru yapraklar göze çarpıyor | او په کوڅو او واټونو کې زيړې شويې ، تويې شوی وچې پاڼې ليدل کيږي |
| Sonbahar mesiminde yazlık elbiselei,ayakkablar ucuzlanıyor | د مني په موسم کې اوړنی جامې ، بوټونه ارزانه کيږي |
| Sonbahar mesiminde çobanlar sürüleri sıcak yerlere götürüyorlar | د مني په موسم کې کوچيان رمې تودو سيمو ته وړي |

Sonbahar mevsiminde havuç, turp ve taze mısır ucuzlanıyor

په مني کې گازرې ، سرې مولی او جوار ارزانه کيږي

Sonbahar mevsiminde kışlık elbiseleri ve ayakkabları pahalılanıyorlar çünkü hava soğuyor

د مني په موسم کې ژمني کالي او بوټونه گرانيږي ځکه هوا سړيږي

Sonbahar mevsiminde anneler günü kutlanıyor

د مني په موسم د مور نړيواله ورځ هم لمانځل کيږي

Sonbahar mevsiminde millet kendi çocuklarına ve kızlarına elbiseleri alıyorlar

د مني په موسم کې خلک خپلو زامنو او لورگانو ته کالي اخلي

Sonbahar mevsiminde üniversitelerde ve okullarda iki aylık vize sanavı alınıyor

د مني په موسم کې په پوهنتونونو او ښوونځيو کې دوه ماشتنی ازموينه اخيستل کيږي

Sonbahar mevsiminde halk parkalara gider ve piknik yaparlar

د مني په موسم کې خلک پارکونو ته ځي او هلته ميلې کوي

Kısacası Sonbahar

لنډه دا چې د مني

mevsiminde kimse yüzemezler çünkü su soğuk oluyor sonbahar mesiminde balıkçılar çok seviniyorlar çünkü bu mevsimde denizlede ,nehirlede ve ırmaklarda balık çoğalıyor

په موسم کې څوک لامبو نه وهي ځکه اوبه سړې وي د مني په سوسم کې کب نيوونکي ډير خوشاليږي ځکه په دې موسم کې په سمندرگيونو ، سيندونو او بيالو کې کبان ډيريږي

| | |
|---|---|
| sonbahar mevsimler ve soğuk rüzgarlar | د مني مو سومونه او ساړه بادونه |
| sonbahar mevsiminde tarlacılar taralaları ekim için hazırlanıyor | د مني په موسم کې کروندګر خپلې کروندې د کښت لپاره تیاروي |
| sonbahar mevsiminde buğday ve soğan ekilir | د مني په موسم کې غنم او پیاز کرل کیږي |
| Sonbahar mevsiminde tarlacılar iyi para kazanıyorlar | د مني په موسم کې کروندګر ښې پیسې ګټي |
| Tarlacılar en iyi verim elde etmek için tarlayı bol bol suluyor | کروندګر د لاښه حاصل دپاره کرونده ښه اوبه کوي |
| Sonbahar mesiminde avcılar ava çıkıyorlar | د مني په موسم کې ښکارزن ښکار ته وځي |
| sonbahar mevsiminde her tarafta rengareg kuşlar göze çarpıyor | د مني په موسم کې هره خوا رنګا رنګ مرغی تر سترګو کیږي |
| afganistan'da sonbahar mevsiminde buğday ve soğan ekiliyor | په افغانستان کې د مني په موسم کې غنم او پیاز کرل کیږي |
| dünyanın çoğu yerlerde sonbahar mevsiminde hava çok soğuk oluyor | د نړی په ډیرو سیمو کې د مني په موسم کې هوا ډیره سړه کیږي |

# şimdiki zaman-راوان مهال

راوان مهال د فعل ځخه د ( ماک ،مېک) د ليرې کولوځخه ورستاړي وروسته د (iyor,ıyor,uyor,üyor)کاروول کيږي

| | | |
|---|---|---|
| İçmek | İçiyor | په څښلو اخته دی |
| Yemek | Yiyor | په خوړلو اخته دی |
| Çizmek | Çiziyor | په رسمولو اخته دی |
| Okumak | Okuyor | په ويلو اخته دی |
| Başı ağırmak | Başı ağrıyor | سر يې خوږيږي |
| Karnı ağırmak | Karnı ağrıyor | نس يې خوږيږي |
| Ayağı aığrmak | Ayağı ağrıyor | پښه يې خوږيږي |
| Dişi ağırmak | Dişi ağrıyor | غاښ يې خوږيږي |
| Yağmur yağmak | Yağmur yağıyor | باران وريږي |
| Kar yağmak | Kar yağıyor | واوره وريږي |
| Hava esmek | Hava esiyor | شمال لګيږي |
| Çok konuşmak | Çok konuşuyor | ډير غږيږي |
| Hiç yorulmamak | Hiç yorulmuyor | هيڅ نه ستړی کيږي |
| Çok uyumak | Çok uyuyor | ډير ويديږي |
| Çok düşmek | Çok düşüyor | ډير لويږي |

| | | |
|---|---|---|
| Şimdi yemek | Şimdi yiyor | اوس يې خوري |
| Şimdi gülmek | Şimdi gülüyor | اوس خاندي |
| Şimdi gelmek | Şimdi geliyor | اوس راځي |
| Şimdi su içmek | Şimdi su içiyor | اوس اوبه څکي |
| Şimdi boyamak | Şimdi boyuyor | اوس يې رنګوی |
| Şimdi uyanmak | Şimdi uyanıyor | اوس پاڅيږي |

# Geniş zaman – ساده مهال

*ساده مهال په خبرتياو ، عمومي خبرو او نورو ساده خبرو کې کارول کیږي .*
*□ □□□ □□ □ mak,mek د لیرې کولو څخه وروسته*
(ar,er ,ır,ir.ur.ür) *ورستاړي په زیاتولو سره جوړیږي.*

لکه:

| (فعل ) | (Geniş zaman) | (ساده مهال) |
|---|---|---|
| Gelmek | gelir | راځي |
| Yazmak | yazar | لیکي یې |
| Görmek | görür | ویني یې |
| İçmek | içer | څښي یې |
| Girmek | girer | ننه وځي |
| Tartmak | trtar | تلي یې |
| Silmek | siler | پاکوي یې |
| Süpürmek | süpürür | جارو کوي یې |
| Geçmek | geçer | تیریږي |
| İnmek | iner | کوزیږي |
| Çıkmak | çıkar | پاسیږي |
| Koymak | koyar | ږدي یې |
| Yazdırmak | yazdırır | چاپ کیږي |

# geçmiş zaman - تیر مهال

*تیرمهال په دوه ډوله دی*
*لمړی: څرګند تیر مهال*
*دوهم: ناڅرګند تیر مهال*

*لمړی : څرګند تیر مهال : د فعل څخه د (ماک ، مېک) د لیرې کولو څخه وروسته د اوازلرونکو تورو په پام کې نیولو سره که چیرې د فعل په پای کې دا لاندې توري راغلي وي*
(fstkçşhp) *نو د فعل سره دا لاندې وروستاړي کارول کیږي*
( tı , ti , tu , tü ) لکه:

| (فعل) | Bilirli (geçmiş zaman ) | (څرګند تیر مهال) |
|---|---|---|
| Açmak | Açtı | خلاص یې کړ |
| Görüşmek | Görüştü | ورسره یې ولیدل |
| Yakmak | Yaktı | وه یې سوځوو |
| Yatmak | Yattı | څملاست |
| Koşmak | Koştu | منډه یې کړه |
| Sapmak | Saptı | بې لارې شو |
| Asmak | Astı | ځوړند یې کړ |
| Paslaşmak | Paslaştı | یوبل ته یې پاس وکړ |

| | | |
|---|---|---|
| Konuşmak | Konuştu | خبرې يې وکړې |
| Çakmak | Çaktı | ټاس يې واهه |
| Takmak | Taktı | خاخ يې کړ |
| Kızartmak | Kızarttı | سور يې کړ |
| Kızartmak | Kızarttım | سور مې کړ |
| Kızartmak | Kızarttık | سور مو کړ |
| Eve gitmek | Eve gitti | کور ته ولاړ |
| Eve gitmek | Eve gittim | کور ته ولاړم |
| Eve gitmek | Eve gittik | کورته ولاړو |
| Eve gitmek | Eve gittiniz | کورته ولاړئ |
| Eve gitmek | Eve gittiler | کورته ولاړل |
| Evden gelmek | Evden geldim | کور څخه راغلم |
| Evden gelmek | Evden geldik | کور څخه راغلو |

*او که فعل په پاتې نورو تورو سره پای ته رسیدلای وي نو دا لاندې وروستاړي ورسره کارول کیږي.*

(dı , di , du , dü)

| (خرګند تیر مهال ) | ( geçmiş zaman) | (فعل) |
|---|---|---|
| ومې لوستلو | Okudum | Okumak |
| ومې لیکلو | Yazdım | Yazmak |
| ومې کیندلو | Kazdım | Kazmak |
| کی یې شود | Koydu | Koymak |
| ومې څیړلو | İnceledim | İncelemek |
| پوخ مې کړلو | Pişirdim | Pişirmek |
| ومې خوټول | Haşladım | Haşlamak |
| کوز شوم | indim | İnmek |
| پاس شوم | Bindim | Binmek |
| ومې ریبلو | biçtim | Biçmek |
| پاک مې کړلو | temizledim | Temizlemek |

| | | |
|---|---|---|
| Fırçalamsk | Fırçaladım | بورس مې کړلو |
| Traş etmek | Traş ettim | ومې خرييلو |
| Hapşırmsk | Hapşırdım | وه پرنجيدلم |
| Bakmak | Baktım | ومې کتلو |
| Dinlemek | Dinledim | غوږ مې ونيولو |
| His etmek | His etim | حس مې کړلو |
| Emzdirmek | Emzdirdi | تی يې ورکړلو |
| Doğurmak | Doğurdu | وه يې زيږاولو |
| Hastalanmak | Hastalandın | نارغ شوم |
| Tedavi olmak | Tedavi oldum | درملنه منه مې وکړه |
| Buz tutmak | Buz tuttu | کرنګ يې ونيو |
| Yakalamak | Yakaladım | ګير مې کړو |
| Kovmak | kovdum | ومې شړلو |

*دوهم : تیر ناڅرگند مهال:*
په دې مهال کې چې یو کار تر سره شوی وي خو ساعت او ورځ یې پوره معلومه نه وي .

دا مهال د فعل ښخه د ( ماک ، مېک) د لیرې کولو ښخه وروسته دا mış , miş ,muş , müş لاندې وروستاړي د اواز لرونکو تور په پام کې نیولو سره

زیاتیږي .

| | |
|---|---|
| کور ښخه وتلی دی | evden çıkmış |
| ما ښه خوبونه لیدلي | Ben güzel rüyaları görmüşüm |
| ما سیگرټ ښکولي نه دي | Ben sigarayı içmemişim |
| مونږ هیڅ شخړه نه ده کړيې | Biz hiç kavagalaşmamışız |
| تاسو تللي نه یاست | Siz gitmemişsiniz |
| ایا هغوی راغلي ؟ | Onlar gelmişler mi? |
| ایا هغه هلته دی؟ | O orda mıymış? |
| زه ډارشوی یم | Ben korkmuşum |
| مونږ ډار شوي یو | Biz korkmuşuz |

| | |
|---|---|
| Sen korkmuşsun | ته ډار شوی یې |
| Siz korkmuşsunuz | تاسو ډار شوي یاست |
| O korkmuş | هغه ډار شوی دی |
| Onlar korkmuşlar | هغوی ډار شوي دي |
| Yağmur yağmış | باران وریدلی |
| Kar yağmış | واوره وریدلې |
| Vaaa… arkadaşım gelmiş | وای ... ملګری مې راغلی |
| Tarihi geçmiş | نیټه یې تیره شویې |
| Sen içmiş misin? | ایا څښلي د دي ؟ |
| Yemek yemişmisin? | ایا ډوډی د خوړلې ده ؟ |
| Çay içmişmisin? | ایا چای د څښلی دی ؟ |
| O yemek yemiş mi? | ایا هغه ډوډی خوړلې ده؟ |
| Onlar yemek yemişler mi? | ایا هغوی ډوډی خوړلیې ده ؟ |

| | |
|---|---|
| Seni çağırıyormuş | ته يې غوښتلې |
| Sel gelmiş | سيلاب راغلی |
| Çok yağmur yağacakmış | ډير باران به ووريږي |
| Sel gelecekmiş | سيلاب به راشي |
| Ben uyumuşum | زه ويده شوی وم |
| O bana küsmüş | هغه زما څخه خفه شوی |
| Sen yapacakmışsın | ته به يې کوې |
| O gelecek miymiş? | ايا هغه راځي؟ |
| Denetçiler gelmiş | څارونکي راغلي |
| Babam gelmiş | پلار مې راغلی |
| Otobüs geçmiş | ملي بس تير شوی |
| Geç kalmışım | ناوخته شوی يم |
| Geç kalmışsın | ناوخته شوی يې |
| Geç kalmışız | ناوخته شوي يو |

| | |
|---|---|
| Geç kalmışsınız | ناوخته شوی یاست |
| geç mi kalmışsınız ? | ایا ناوخته شوي یاست ؟ |
| evet geç kalmış | هو ناوخته شوي یو |
| ben sınavda Başarlı olmuşum | زه په ازموینه کې بریالی شوی یم. |
| sen sınavda Başarlı olmuşsun | ته په ازموینه کې بریالی شوی یې . |
| o sınavda Başarlı olmuş. | هغه په ازموینه کې بریالی شوی دی |
| biz sınavda başarılı olmuşuz | مونږ په ازموینه کې بریالي شوي یو |
| siz sınavda başarılı olmuşsunuz. | تاسو په ازموینه کې بریالي شوي یاست |
| onlar sınavda başarılı olmuşlar | هغوی په ازموینه کې بریالي شوي دي |
| ben sınavda başarılı olmuş muyum?? | ایا زه په ازموینه کې بریالی شوی یم؟ |
| sen sınavda başarılı olmuş musun?? | ایا ته په ازموینه کې بریالی شوی یې ؟ |
| o sınavda başarılı olmuş musun?? | ایا هغه په ازموینه کې بریالی شوی دی؟ |
| biz sınavda başarılı olmuş muyuz? | ایا مونږ په ازموینه کې بریالي شوي یو؟ |
| siz sınavda başarılı olmuş musunuz? | ایا تاسو په ازموینه کې بریالي شوي یاست؟ |
| onlar sınavda başarılı olmuşlar mı? | ایا هغوی په ازموینه کې بریالي شوي دي ؟ |
| ben sınavda başarılı olmamış mıyım? | ایا زه په ازموینه کې بریالی شوی نه یم ؟ |
| sen sınavda başarılı olmamış mısın? | ایا ته په ازموینه کې بریالی شوی نه یې ؟ |
| o sınavda başarılı olmamış mı? | ایا هغه په ازموینه کې بریالی شوی نه دی؟ |
| siz sınavda başarılı olmamış mısın? | ایا تاسو په ازموینه کې بریالي شوي نه یاست؟ |

## راتلونکی مهال :

راتلونکی مهال د فعل څخه د ( ماک ، مېک ) لیرې کولو څخه وروسته د acak , ecek وروستاړي د اواز لرونکو تورو په پام کې نیولو سره زیاتیږي

| | |
|---|---|
| Ben okula gideceğim | زه به شوونځی ته ولاړ شم |
| Biz eve gideceğim | مونږ به کور ته ولاړ شو |
| Sen üniversiteye gideceksin | ته به پوهنتون ته ولاړ شې |
| Siz parka gideceksin | تاسو به پارک ته ولاړ شئ |
| O sahila gidecek | هغه به ساحل ته ولاړ شي |
| Onlar köylerine gidecekler | هغوی به کلي ته ولاړ شي |
| Be burada kalmıyacağım | زه به دلته پاتې نه شم |
| Biz burada kalmıyacağız | مونږ به دلته پاتې نه شو |
| Sen burada kalmıyacaksın | ته به دلته پاتې نه شې |
| Siz burada kalmıyacaksınız | تاسو به دلته پاتې نه شئ |

| | |
|---|---|
| O burada kalmıyacak | هغه به دلته پاتې نه شي |
| O burada kalacak mı? | ايا هغه به دلته پاتې شي؟ |
| Onlar burada kalmıyacaklar | هغوی به دلته پاتې نه شي |
| Onlar yarın gelecekler | هغوی به بله ورځ راشي |
| Ben yarın geleceğim | زه به سبا راشم |
| Biz yarın geleceğiz | مونږ به سبا راشو |
| Sen yarın geleceksin | ته به سبا راشې |
| Siz yarın geleceksiniz | تاسو به سبا راشئ |
| Ben yarın geleceğim | زه به سبا راشم |
| Sen yarın geleceksin | ته به سبا راشې |
| Biz yarın geleceğiz | مونږ به سبا راشو |
| Siz yarın geleceksiniz | تاسو به سبا راشئ |
| O yarın gelecek | هغه به سبا راشي |

# ډيرې مهمې جملې
# Çok önemli cümleler

| | |
|---|---|
| Okullar gelecek ay başlıyacak | ښوونځی راتلونکی میاشت پیل کیږي |
| Seseye ben mezun olacağım | راتلونکی کال زه فارغ کیږم |
| İki ay sonra genel seçim olacak | دوه میاشتې وروسته ټولټاکنې کیږي |
| Önümüzdeki ay sınav başlıyacak | راتلونکی میاشت کې ازموينې پيل کيږي |
| Haftaya gelecek | راتلونکی اونی راځي |
| Bir ay sonra gelecek | یوه میاشت وروسته راځی |
| 20 sene sonra dünyanın bir numara ülke olacak | ۲۰ کاله وروسته د نړی اول نمبر هیواد کیږي |
| Seneye bittireceğiz | راتلونکی کال پورې يې پای ته رسوو |
| Haftaya bir şey kalmıyacak | راتلونکی اونی پور ې هیڅ شی نه پاتې کيږي |
| İki hafta sürmiyecek | دوه اونۍ وخت نه نيسي |

| | |
|---|---|
| Ben doktor olacağım | زه به رنځپوه شم |
| O mühendis olacak | هغه به انجینر شي |
| O öğretmen olacak | هغه ښوونکی شي |
| Kim gelecek? | څوک راځي ؟ |
| O oturmiyecek | هغه نه کښیني |
| Ben onunla konuşacağım | زه به د هغه سره خبرې وکړم |
| Ben onunla konuşmayacağım | زه به دهغه سره خبرې ونه کړم |
| Sen ne olacaksın? | ته به څه شی شې؟ |
| Sen buraya gelmeyeceksin | ته به دلته نه راځې |
| Ben elma yiyorum | زه مڼه خورم |
| Biz üzüm yiyoruz | مونږ انګور خورو |
| Sen portakal yeme | ته مالټه مه خوره |
| Siz portakal yemeyin | تاسو ماټې مه خورئ |

| | |
|---|---|
| Siz nar yiyin | تاسو انار وخورى |
| Biz karpuz yiyoruz | مونږ هنداونه خورو |
| Ben kavun yiyorum | زه خربوزه خورم |
| O muz yiyor | هغه کیله خوري |
| Onlar Hindistan cevizi yiyorlar | هغوی کوپره خور ي |
| Onlar mango yiyorlar | هغوی ام خوري |
| Ben yemiyeceğim | زه یې نه خورم |
| Biz yemek yedik | مونږ ډوډی وخوړه |
| Biz yemek yemişiz | مونږ ډوډی خوړلیې |
| Biz yemek yiyeceğiz | مونږ به ډوډی وخور |
| Siz yemek yemişsinizdir | تاسو به ډوډی خوړلیې وي |
| O yemek yemiştir | هغه به ډوډی خوړلیې وي |
| Onlar erken yediler | هغوی ناوخته وخوړله |
| Onlar geç yiyecekler | هغوی یې نا وخته خوري |

| | |
|---|---|
| Yurtta iyi arkadaşlık yapacağız | په شپینځی (لیلیه) کې به ښه ملګرتیا کوو. |
| Sabah erken uyanacağız | سهار وختي به پاڅیږو |
| Kahvaltı birlikte yapacağız | سبانری به په یو ځای کوو |
| İkindi saat dörtte voleybol sahasına gideceğiz | مازدیګر به په څلور بجو والیبا لوبغالي ته ځو |
| Yarım saat antreman yapacağız | نیم ساعت به ځانونه ګرم کړو |
| Ondan sonra oyun başlayacağız | دهغه څخه وروسته به لوبه پیل کوو |
| Top oynarken favul yapmayacağız | په لوبه کې به فاول نه کوو |
| Oraya çok seyrciler gelecekler | هلته ډیر کتونکي راځي |
| Top oynadıktan sonra duş Alacağız | د لوبې کولو څخه وروسته به ځانونه مینځو |
| Akşam olduğunda yemekhanede yemek beraber yiyeceğiz | او چې ماښام شي بیا به خوړنځي کې ډوډی په یو ځای باندې خور و |
| Ve akşam saat birde beraber uyuyacağz | او د شپې په ۱ بجه به ټول څملو |

| | |
|---|---|
| Geç gelenler gürültü | هغه څوک چې ناوخته راځي باید ډېر |
| Yapmamalı | شور ونه کړي |
| Tüm gece ders çalışmak İsteyenler çalışma salonuna gitsinler | او هغه څوک چې ټوله شپه سبق ویل غواړي نو واینځي ته د لاړ شي |
| Onlara söyle ki gece yarısına kadar kağıt oyunu yapmasınlar | هغوی ته ووایه چې د شپې په نیمایي کې د پرې (قتې) نه کوي |
| Ahmet gece geçe kadar gitar Çalmasın | احمد باید د شپې ناوخته پورې رباب ونه وهي |
| Birbirimizle anlaşacağız | یو بل سره به جوړ راځو |
| Ve dedikodu yapmayacağız | او د چا پسې به خبرې نه کوو |
| Kimsenin hakkı da yemiyeceğiz | د چا حق به نخوروو |
| Herkes ile iyi davranacağız | د هر چا سره به ښه چلند کوو |
| birbirimize saygı göstereceğiz | یو بل ته به احترام لروو |
| Birbirimizi kırmayacağız | د یو بل زړونه به نه ماته وو |
| Hayır iş yapacağız ki diğer öğrenciler bizden örnek alsın | خیریه کارونه به کوو تر څو نور زده کوونکي زموږ څخه مسال واخلي |
| Sabah namaza kalkarken biririmizi uyandıracağız | سهار لمنځه ته چې پاڅو یو بل به را پاڅوو |

| | |
|---|---|
| Namazımız cemaat ile kılacağız | لمونځ به مو په جمه سره کوو |
| Türkiye'de kızları küçükken evlendirmiyorlar | په ترکیه کې نجوني چې وړکی وي نه واده کوي |
| Kızlar ve gençler üniversiteden mezun olduklarında evleniyorlar | نجوني او هلکان کله چې د پوهنتونو څخه فارغ شي بیا واده کیږي |
| Genellikle düğün düğün salonunda yapılır | عموما وادونه په هوټلونو کې کوي |
| Türklerde  başlık parası yok | په ترکانو کې د ولور پیسې نشته |
| fakat  ev masrafı çoktur | خو د کور خرڅونه ډیرزیات دي |
| Büyük şehirlerde çoğu gençler evlenmeye gücü yetmiyor | په لویو ښارونو کې ډیر ځوانان د واده کولو تاوان نه لري |
| Şehirlede yaşayanlar | ښارونو کې اوسیدونکي |
| Kendi köylülerle evlenmeyi istiyorlar | هغوی غواړي چې د خپل کلیوال سره واده وکړي |
| Evlilikten sonra onlar baba | د واده کولو څخه وروسته دوی د مور او |
| Ve anneden ayrılıyorlar | پلار څخه  بیل کیږي |
| Ama bayram gününde ve başka tatil günlerinde  kendi baba ev anne sormaya gidiyorlar | خو  دوی  د اختر په ورځ  او  نورو درخصتی په ورځو کې د خپل پلار او مور پوښتني ته ځي |

| | |
|---|---|
| Onlar 25 -30 yaş arası çocuk yapıyorlar | دوی د ۲۵ او ۳۰ کالو په عمر کې یو ماشوم زیږوي |
| Ve 35 yaş olduğunda bir çocuk | او چې کله ۳۵ کلن شي بل ماشوم هم |
| daha yapıyor | وزیږوي . |
| Kendi çocukları dört yaşındayken | خپل ماشومان چې کله څلور کلن شي |
| Ana okullara gönderiyorlar | وړکتونونو ته لیږي |
| Beş yaşında okula başlıyorlar | په پنځه کلنی کې ښوونځی پیل کوي |
| Ve 17 yaşında mezun oluyor | او په اولس کلنی کې فارغ کیږي |
| Anne ve baba öğrencinin | مور او پلار د زده کوونکي ورځنی |
| Günlük harcı veriyor | حرڅه ورکوي |
| Ve üniversiteye gittiklerinde babası 500 tl harc parası veriyor | او پوهنتون ته د تللو په وخت کې پلار یې ۵۰۰ روپې د جیب خرڅه ورکوي |
| Öğrenciler üniversitedeyken çok | زده کوونکی چې په پوهنتون کې وي |

| | |
|---|---|
| Para harcamıyorlar | ډیرې پیسی نه خرڅ کوي |
| Onlar kendi isteklerile evlenebilirler | دوی کولای شي په خپله خوښه واده وکړي |
| Düğünde anneler ve babalar yardımcı oluyorlar | په واده کې میندې او پلورونه مرسته کوي |
| Bazıları tanımadığı kimseler ile evlenmiyorlar | ځینې د نا پیژاندو سره واده نه کوي |
| Şehirlerde bazı zaman komşularınız iyi insanlar | په ښارونو کې کله کله داسې هم کیدای شي چې ګاوندیان مو ښه انسانان |
| Yüzde 20 kızlar baba ve ya Baba tarafından | په سلو کې ۲۰ نجونې د پلار او یا |
| evlendiriyorlar | مور له خوا واده کوول کیږي |
| Zengin anne ve baba Çocuğuna ve ya kızına | شتمن مور او پلار خپل زوی یا لور ته |
| Ev,araba ve ev eşiyaları alıyorlar | کور ، موټر او د کور توکې اخلي |
| Kolayca kimse kimse ile | په اسانی سره څوک د چاسره |
| evlenmezler | واده نه کوي |
| Çoğu öğrenciler üniversitelerde | ډیر زده کوونکي په پوهنتونونو کې |

| | |
|---|---|
| nişanlanıyorlar | په واده نوميالي شي |
| Üniversiteden mezun olduğunda | د پوهنتون څخه د فارغيدو په وخت کې |
| evleniyorlar | واده سره کوي |
| Ve iyi geçiniyorlar. | او ښه ژوند کوي . |
| İş yerinde başka işçiler ile iyi Davranmak çok önemlidir | د کار په ځای کې د نورو کارکوونکو سره ښه چلند کول ډير مهم دی |
| Çok çaba gösteren. | ډير زيار ايستونکی کس. |
| Boş boş konuşmamak ve | بې ځايه خبرې نه کول او |
| Sabah erken işçi iş yerine Zamanında gitsin | سهار په وخت بايد کارکوونکی کارځای ته په وخت ولاړ شي |
| İş yerinde sigara içilmez | په کارځی کې سګرټ نه څکلو کيږي |
| İşçiler birbirleri mutlu tutsun | کارکوونکي بايد يو بل خوشاله وساتي |
| İşçi izinsiz gitmemeli. | کارکوونکی بايد بې اجازې ولاړ نشي |
| İş esnasında tembellik | او د کار په وخت کې بايد ناغيري |
| Yapmasın | ونه‌کړي . |
| 45 dakika yemek yemek Molası oluyor. | ۴۵ دقيقې د ډوډی خوړلو دمه وي |
| Kendi işi iyice tamamlamak. | خپل کار په ښه ډاول سرته رسول |

